


**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونکي د روزنې او د ساينس مرکز معينيت

د تعليمي نصاب د پراختيا لوی رياست

# د ښوونکي لارښود

## پښتو خلورم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

unicef

د هر ماشوم لپاره

برای هر طفل



From the People of Japan



د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رياست

# د ښوونکي کتاب
# د پښتو ژبې د تدريس لارښود

## څلورم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۵هـ.ش.



## ليکوالان:

- د سرمولف مرستيال محمد قدوس زکوخيل
- مولف ميرويس ځدراڼ
- مولف محمد يعقوب مومند

## د ژبې اډيټور:

- محمد قاسم هيله من

## ديني، سياسي او فرهنگي کمېټه:

- محمد آصف کوچی
- حبيب الله راحل د تعليمي نصاب د پراختيا په رياست کې د پوهنې وزارت سلاکار

## د څارنې کمېټه:

ـ دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين
ـ دکتور شيرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
ـ سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس

## ټايپ او ډيزاين:

ـ صدرالدين ابراهيم خيل



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامېريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سينه کې د آسيا به
لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مو دی رهبر
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دی چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهی په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برې د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانی له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# لړلیک

# له ښوونکو سره يوڅوخبرې

## درنوښوونکو!

دښوونکي دغه لارښود هغه مرستندوی کتاب دی چې د څلورم ټولګي ددرسي کتاب د ښه تدريس او لارښوونې لپاره مرسته کولای شي.
دغه مرستندوی لارښود کتاب ځکه دښوونکولپاره ليکل کيږي چې په لومړي ګام کې په درسي کتاب باندې د بيا کتنې په اړتيا باندې پوه شي او دغه راز په درسي کتاب کې دانځورون، دلوست دهڅوونکو پوښتنو او فعاليتونو په موخو اوهمد غو موخو ته درسيدو لپاره دتدريس په ميتودونو او لاروچارو لاښه وپوهيږي اودلوست ورکولو په برخه کې به ديو مرستندوی کتاب په توګه ترې کار واخلي.
دتعليمي نصاب دپراختيا اودرسي کتابونو دتأليف دلوی رياست د ريسرچ رياست له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې دبيا کتنې لپاره له اصولوسره سم نظرونه راټول کړل، هغه يې وڅيړل اواړوند څانګو ته يې وسپارل. د پښتو ژبې مؤلفينو نومووړې نظرونه په دقت سره مطالعه کړل،کوم چې ددرسي کتابونو دسمون لپاره سم وو هغه يې راواخيستل او خپل نظرونه يې هم ورسره يوځای کړل اوله لومړی ټولګی څخه ترشپږم ټولګی پورې يې په درسی کتابونو باندې نوی نظر وکړ.
د پښتو ژبوزده کوونکو له پاره د څلورم ټولګي دغه موجوده کتاب چې اوس تدريس کيږي، دښه تدريس په خاطريې دښوونکو له پاره دغه لارښود کتاب تأليف شوی دی چې ښوونکي ترې کار واخلی.
په دغه لارښود کتاب کې بيلابيلو موخو ته دزده کوونکو درسيدو لپاره لارې چارې په ګوته شوي اودهر لوست دتدريس درسي ساعتونه هم پکې ښودل شوي اوخبرې پرې شوي دي.
ښه به وي چې په دې لارښود کتاب کې دبيلابيلو برخو تر روښانولو دمخه د معلم محورۍ او د فعالې زده کړې په هکله لنډې خبرې وکړو.

## د معلم محورۍ زده کړه:

زموږ په هيواد کې پخوا د معلم محورۍ دزده کړې په چوکاټ کې زده کړه کيدله. دزده کړې ټول فعاليتونه به ښوونکي سرته رسول اوزده کوونکو به يوازې دليدونکو اواوريدونکو دنده سرته رسوله. په دغه ډول زده کړه کې به دفعاليتونو دسرته رسولو ټول فشار په ښوونکي و.
په ټولګي کې به ترې لږشمير بااستعداده زده کوونکوګټه پورته کوله، دتدريس په دغه ډول زده کړه کې زياتو زده کوونکو ځکه ګټه نشوه اخيستلای اوله زده کړوڅخه وروسته پاتي کيدل چې په فعاليتونوکې ورته برخه نه ورکول کيده. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکو په پوهنيزه، مهارتي او ذهنيتي برخه کې کافي ونډه نه درلوده.
د ساينس او ټکنالوژۍ د زيات انکشاف او پرمختګ لپاره اړينه وه چې د ښوونې اوروزنې پوهانو په درسي نصاب او د تدريس په اصولوکې داسې لارې چارې ولټولې چې زده کوونکي وکولای شي دزده کړې په پوهنيزې، مهارتي اوذهنيتي برخوکې فعاله برخه واخلي اوپه ژوند کې ترې ګټه واخلي.

## فعاله او مشارکتي زده کړه:

کله چې دښوونې اوروزنې پوهان د معلم محوري دزده کړې په چوکاټ کې په نیمګړتیاوو پوه او په دې فکرکې شول چې باید داسې فعاله او مشارکتي زده کړه رامنځته شي چې په هغې کې ښوونکي دلارښود، څارونکي اوفعال ګډون کوونکي حیثیت ولري اوزده کوونکي په خپله په لوست کې فعاله اوعملي برخه ولري چې زده کوونکي وکړای شي دزده کړې په بهیر کې خپله دانشي، مهارتي اوذهنیتي پوهه پیاوړې کړي.

په دې ډول زده کړه کې ښوونکي یوازې زده کوونکي څاري اوله زده کوونکو سره په ستونزو کې مرسته کوي. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکي په خپله کارکوي، لارښوونوته ژوره پاملرنه کوي او زده کوونکوته په ټولو فعالیتونو کې ونډه ورکول کیږي.

په دې ډول فعالې او مشارکتي زده کړه کې ښوونکي د هر لو ست موخه په پام کې نیسي او زده کوونکي نوموړې موخې ته دهغولارو چارو پواسطه ځان رسوي، کومې چې په درسي اولارښو دکتاب کې ورته لیکل شویدي. ددرسي کتاب دهرلوست دموخو دزده کړې لپاره لازمه ده چې له بیلابیلو میتودونو څخه کارواخیستل شي چې دهمدې لارښود کتاب دلوستونو په برخه کې ترې کار اخیستل شوي ده.

## د میتودونو ارزښت:

په فعال تدریس کې بیلابیل میتودونه دلوستونو دتدریس په برخه کې په ګوته شوي دي چې هریویې په خپل ځای د ژبې دزده کړې په برخه کې دزده کوونکولپاره ګټه لري، لاهم په دې برخه کې څیړنې روانې دي اودوخت په تیریدوسر ه په تعلیمي نصاب کې نوي بدلونونه رامنځته کیږي.

د ژبو په درسي کتابونو کې پوهان دې ټکي ته متوجې شول چې باید زده کوونکي د ژبې د زده کړې مهارتونه، لکه :غوږ نیول، لیدل، اورېدل، لوستل، لیکل اوخبرې کول سرته ورسوي. په مشارکي زده کړه کې ارزښتونه دا دي چې زده کوونکي لیدلو، اوریدلو، غوږنیولو، لوست ویلو، لیکلواوخبروکولو ته هڅول کیږي. اوپه دې برخه کې له یو کسیز،دوه کسیز، ډله ییز، دسوال اوځواب له میتودونو څخه کارواخلي.

دزده کړې په دې سیستم کې د زده کوونکو ذهن وده او انکشاف کوي، په ذهنیت کې یې بدلونونه رامنځته کیږي، د درک اوتفکر قوه یې لوړیږي، په دې زده کړه کې د زده کوونکو د زده کړې کچه لوړیږي او په راتلونکي وخت کې د خپل رسالت اومسوولیت د زده کړې اودرک لپاره چمتو کیږي .

دلارښودکتاب په دې برخه کې په هغو برخوباندې رڼا اچوو چې له ښوونکي سره دفعالې زدکړې په پرمخ بیولواوله مؤلفینوسره دهم اهنګۍ اوهم فکرۍ په برخه کې مرسته کوي اودښوونکي لپاره په تدرس کې پوره لارښوونه کولای شي.

## پوهنیزه برخه:

د دې برخې موخه داده چې زده کوونکي دلوست په معنا اومفهوم وپوهیږي اودبیلابیلو موضوعاتو په باره کې یې پوهه زیاته شي. ددې کتاب په ټولولوستونوکې دپوهنیزې برخې دپیاوړ تیا په موخه جملې راوړل شوي او زیات زور په تربیوي اړخ باندې زیات شوی دی. دیوې موضوع په باره کې پوهه ترلاسه کول پوهنیزه برخه ده چې دپوهې ترلاسه کول دزده کړې لومړنی شرط بلل کیږي، خوموږ زده کوونکو ته نه

وايو چې کومه جمله پوهنیزه، مهارتي اوکومه ذهنيتي ده. پدې باندې باید یوازې ښوونکی پوه شي اوداسې فعالیتونه په زده کوونکو سرته ورسوي چې په دغو درې واړو برخو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

## مهارتي برخه:

په زده کړه کې پوهیدل هغه و خت ارزښت اوګټه لري چې زده کوونکي په عملي ډول کار وکړي، لوستل وکړی شي، په مفهوم یې پوه شي، لوستل شوې جملې ولیکلی شي اوپه ورځني ژوند کې ورڅخه کار واخلي. په دې نوي درسي کتاب کې دلوستلو اولیکلو دزده کړې په موخه فعالیتونه ورکړل شوي دي. له دې امله ددرسي کتاب په ټولو لوستونوکې دمهارت برخه په پام کې نیول شوي ده اودغه راز په فعالیتونوکې هم دپوهې اومهارت په برخه کې فعالیتونه راوړل شوي دي.

## ذهنيتي برخه:

له ذهنيتي برخې څخه هدف دادی چې دمتن له لوستلووروسته دزده کوونکو دانشي اومهارتي خواپیاوړې شي او دزده کوونکوپه ذهنیت، سلوک اوکړو وړوکې بدلون راشي. هغه وخت دزده کوونکو په ذهن کې بدلون راتلای شي چې زده کوونکي دلوست په مفهوم پوه اوله لوست څخه اخیستنه وکړي، له هغه وروسته دزده کوونکو په کړو وړوکې مثبت بدلون رامنځته اوپه خپل ورځني ژوند کې ترې ګټه واخلي. دکتاب دلوستونو په ټولو برخو ترپوهنیزې اومهارتي برخې وروسته د ذهنيتي برخې دپیاوړتیا لپاره جملې راغلي دي اودزده کوونکو لپاره مستقیم او غیرمستقیم پیغامونه ورکړل شوي دي.

## د اوریدلو او غوږ نیولو برخه:

د ژبې په زده کړه کې اړینه ده چې د سم اوریدلو، سم غوږ نیولو، سم اوبامفهومه لوستلو، لیکلو سم لیدلواوخبروکولومهارتونه په پام کې ونیول شي. ځکه په دې ټولګي کې باید زده کوونکي متن داسې ولولي چې په مفهوم یې پوه شي. دکتاب په فعالیتونو کې دپوهنیزې، مهارتي اوذهنيتي برخو په راوړلو سربیره روزنیز پیامونه هم د زده کوونکو دپوهې د کچې دلوړولو لپاره راوړل شوي دي. دښوونې اوروزنې پوهانو په تدریس کې بیلابیل میتودونه دفعال تدریس داصولو پربنسټ رامنځته کړي دي، لکه: دلوستلو، لیکلو، سوال او ځواب، مقایسوي، خبرو اترو، مشق او تمرین، په یو کسیز، دوه کسیزه توګه فعالیتونه اونور.

د ښوونکو بری په دې کې دا دی چې په خپل مضمون باندې حاکم وي. ددرسي کتاب او د ښوونکي دلارښودکتاب د فعالیتونو له مخې لوست پرمخ یوسي اوله مولفینو سره هم فکره اوسي.

څومره چې ښوونکی په ډیرو میتودونو پوه وي اوڅومره چې دلوست په جریان کې له مرستندویه موادوڅخه کار واخلي، په هماغه اندازه زده کړه اغیزمنه اوګټوره کیږي او دلوست موخې سرته رسیږي.

په دې ټولوکې ښوونکي ته لازمه ده چې په ټولګي کې لارښوونکی اوڅارونکی واوسي، په ټولګي کې دزده کوونکوفردي توپیرونه، لیاقت او استعدادونه په پام کې ونیسي او ټولو زده کوونکوته په کې ونده ورکړل شي. د میتودونو د سرته رسولو لپاره لازمه ده چې له مرستندوی توکو څخه کاروااخیستل شي.

## د لارښود چوکاټ:

په لارښودکتاب کې مو دڅانگې د مولفینو په یو نظر سره د ښوونکي د لارښود له بیلابیلو چوکاټونو څخه یوازې همدغه  چوکاټ په گډ نظر سره وټاکه. موږ یولوست په درو برخو ونه ویشلو . ددې کار لپاره مو یو شمیر دلایل درلودل:

۱- که چیرې یولوست دښوونکي لپاره په لارښود کتاب په درو برخو مو ویشلای وای.دښوونکي دغیر حاضرۍ په صورت کې یولوست تیریده په بله ورځ مجبور و چې ددویم ساعت لپاره ټاکل شوی لوست ورکړي. په دې ډول دلومړي ساعت لوست پاتي کیده په دویم ساعت کې یې دویمه برخه لوست ورکاوه .

۲- دښوونکي دازادۍ اوانکشاف مخه نیول کیده . داصولوله مخې ښوونکی باید دازادۍ په چوکاټ کې خپله هم کار وکړی، خپل پلان ولري اویولوست په خپله خوښه داونۍ په درسي ساعتونوکې ورته تدریس کړي ښوونکي باید ورځنی، هفته وار، میاشتنی اوکلنی پلان ددرسي کتاب له مخې جوړ کړي.

۳- که مویولوست په درو برخو ویشلای وای دکتاب حجم ډیریده ډیرې پیسې پرې لگیدلې .

۴- بله داچې که چیرې درسي ساعتونه کم اویازیات شي ښوونکی ددې واک لري چې یو لوست داونۍ په درسي ساعتونوکې ورته تدریس کړي.

## د تدریس توکي:

هغه مواد  اونور مرستندوی توکي دي چې په یوې سیمې کې د محیطي موادو په توگه موجود وي او د هغو په واسطه ښوونکی هدف ته پرې ځان ورسوي. زده کوونکو ته تدریس گټور او په زړه پورې کړي، د تدریس وسیلې او مرستندویه، لکه: تخته، تباشیر، تخته پاک،. دالفبا چارټ، انځورونه، د کلمو او جملو لیکلي کارتونه، کمپیوتر، دپروجکتور پواسطه دهنري اوتعلیمي فلمومو ښودل،پروجکتور اونور د تدریس ښې وسیلې بلل کیږي.

## ارزونه:

ښوونکي ته لازمه د ه چې  دلوست په پای کې دخپل لوست دارزونې لپاره  چې زده کوونکوځومره  زده کړه کړې ده. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. دارزونې گټه داده چې ښوونکی دارزونې په واسطه هم  زده کوونکي ارزوي اوځان ارزوي.که چیرې زده کوونکي پوه شوي نه وي ښوونکی کولای شي چې لوست په لنډه توگه یو ځل ورته تکرارکړي.

د هر متن د پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي برخې له پوهیدو وروسته د درس د تحکیم، ټینگښت او پوهېدو لپاره ارزونه د درسي پروگرام یو بنسټیز رکن دی چې ښوونکی یې باید په پام کې ولري.

## کورنۍ دنده:

ښوونکی دې زده کوونکوته مناسبه کورنۍدنده ورکړي چې زده کوونکي یې په کورکې سرته ورسوي. دکورنۍدندې کتنه ډېره مهمه اوارزښتناکه ده. دکورنۍ دندې په سرته رسولوسره  زده کوونکي خپل مسؤولیت احساسوي، له زده کړې سره عادت کیږي، دزده کړې درجه یې لوړیږي اوله زده کړې څخه لري نه پاتي کیږي. ښه

ده چې زده کوونکوته دهغوی دپوهې اوپیاوړتیا سره سم بیلا بیلې کورنۍ دندې ورکړل شي اودنورو مضمونونو کورنۍ دندې هم په پام کې ونیسي.

په پخوانیو درسي کتابونو کې یوازې پوهنیزې خواته ډیره پاملرنه شوي وه، خو د څلورم ټولگي په دې نوي درسی کتاب کې دشرایطو او مفرداتو په پام کې نیولو سره دبیا کتنې کارپیل شو اودهرلوست په متن کې پوهنیزه، مهارتي اوذهنیتي برخې ورزیاتي شوي اودغه راز دهرلوست لپاره یوشمیر فعالیتونه چې په هغو کې دانشي، مهارتي اوذهنیتي برخې لري، هم لیکل شوي دي.

په لاربنودکتاب کې دټولو لوستونو لپاره یو عمومي چوکاټ تیارشوي اوډک شوی دی. چوکاټ داسې جوړ شوی دی چې لومړی دچوکاټ په سرکې دلوست شمیره، دلوست دتدریس وخت لیکل شوی دی.

هر لوست باید داوني په درسي ساعتونوکې زده کوونکو ته تدریس شي.

موږ ښوونکي نه قیدوو. ښوونکي باید یولوست داونۍ ددرسي ساعتونو په پام کې نیولو سره په درو برخو وویشي. له چوکاټ سره سم دې په هردرسي ساعت لومړی د درسي کتاب له فعالیتونو څخه کارواخلي. که دکتاب کوم فعالیت پاتي شو بیا دې پاتي فعالیتونه دلاربنودله فعالیتونوسره دنورو درسي ساعتونو لپاره په پام کې ونیسي. په زده کوونکو دې عملي کړي اوکه وخت و ښوونکي کولای شي دهمد غه ډول فعالیتونو په ډول نور فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي .په لومړي درسي ساعت کې دکتاب له مخې کورنۍ دنده ورته ورکړي اوپه دویم درسي ساعت کې دې دلاربنود له مخې کورنۍ دنده ورته وسپاري اوپه دریم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورڅخه وغواړي. ددرسي کتابونو دتألیف په برخه کې په درسي کتابونو بیا کتنه دمعارف له ستراتیژی سره سمه شوي ده چې زده کوونکي دلومړی دورې تر فارغیدو وروسته په لوستلو اولیکلو وپوهیږي. له دې امله لازمه ده چې ښوونکي زده کوونکو ته ددغه لاربنود کتاب له مخې دزده کړې مهارتونه اوفعالیتونه په پام کې ونیسي اوزده کوونکي په زده کړه کې جسمي اوذهني فعال ګډون وکړي.

د درسي کتابونو د تالیف په برخه کې په درسي کتابونو بیا کتنه د معارف له ستراتیژی سره سمه شوي ده چې زده کوونکي دلومړی دورې تر فارغیدو وروسته په لوستلو اولیکلو وپوهیږي. له دې امله لازمه ده چې ښوونکي زده کوونکو ته ددغه لاربنود کتاب له مخې دزده کړې مهارتونه اوفعالیتونه په پام کې ونیسي اوزده کوونکي په زده کړه کې جسمي اوذهني فعال ګډون وکړي.

## درنوښوونکو!

د څلورم ټولگي په درسي کتاب چې ستا سو په واک کې دی، تربیاکتنې وروسته یې خپل قانوني پړاوونه وهلي، چاپ اوستاسوپه واک کې درکړل شوی دی. په پخواني درسي کتاب کې دریسرچ دریاست له خوا راټولې شوې بیلا بیلې نظریې وڅېړل شوي اودمولفینو وړاندیزونه اولازمه نظرونه هم پکې ورزیات شوي دي .

د څلورم ټولگي درسي کتاب د فزیکي جوړښت له مخې ۳ برخې لري:

- د کتاب مقدماتي برخه
- د متن برخه
- وروستي برخه

## د کتاب مقدماتي برخه:

په لومړی برخه کې دکتاب مقدماتي برخه راغلي ده چې په هغې کې دلاربنود نوم، دمولفينونومونه، دمحتوا دکتونکي نوم، دژبې د اديتورنوم، د ديني، سياسي اوکلتوري کميټې نومونه ليکل شوي. دهرې برخې مسؤول په خپله برخه کې کتاب ليدلی او د هغو له خوا تيروتنې په گوته شوي اوسمې شوي دي. ترهغو وروسته بسم الله،ملي سرود، دپوهنې د وزير پيغام او د کتاب ليک لړ راغلي دي .

دکتاب په دويمه برخه کې ددرسي کتاب متن راغلی دی.

په وروستی برخه کې دمعارف ترانه راغلي ده.

## درنوښوونکو !

په ټول تعليمي کال کې له رخصتۍ پرته ۲۸ درسي اونۍ په پام کې نيول شوي دي. په هره اونۍ کې په ابتدايه ټولگيوکې دپښتوژبو زده کو ونکولپاره په اونی کې ۵ درسي ساعتونه داوس لپاره په پام کې نيول شوي دي، چې ټول ۱۴۰ساغتونه کيږي. موږ دټول تعليمي کال د ۲۸ اونيو په پام کې نيولو سره په درسي کتاب کې ټول ۴۶ لوستونه راوړی دي چې يو لوست په ۳ درسي ساعتونوکې تدريس کيږي اوټول ۱۳۸ساعتونه کيږي په پای ۲درسي ساعتونه پاتي کيږي په نوموړو ۲ساعتونوکې دې پخواني لوستونه تکرارشي.

بايد يادونه وکړو چې موږ درسي کتاب په هر لوست کې لومړی دلوست شميره راوړي ده. ترهغه وروسته دلوست سرليک اوبيا ترې لاندې داصولوله مخې تصويرونه او عکسونه ځکه راوړي دي چې هر عکس اوانځور دمتن يوه برخه بلل کيږي. ښوونکی بايد د انځور په هکله له زده کوونکو څخه کله ناکله انگيزه وي پوښتنه وکړي چې په عکس اويا انځورکې څه ويني؟

له هر عکس اويا انځورلاندې د لوست موخه راغلي ده چې دهمدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی اودهمدغې موخې په اساس ورته فعاليتونه عيار شوي چې ښوونکي يې په زده کوونکو باندې سرته ورسوي اوخپله ورسره مرسته و کړي. تردې وروسته هڅوونکي پوښتنې راغلي دي له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې دهغوذهن لوست ته راوگرزي.

له هغه وروسته د لوست متن راغلی دی. په متن کې دانشي، مهارتي او ذهنيتي خواوې په پام کې نيول شوي دي. ترمتن وروسته فعاليتونه راغلي دي، ښوونکي کولای شي دهمدې لاربنود دلارښوونو له مخې چې مخکې يې يادونه وشوه کاروکړي.

کله چې ښوونکی ټولگي ته ورشي، لومړی به مقدماتي فعاليت سرته ورسوي يعنې تر هر څه د مخه بايد سلام واچوي چې په زده‌کوونکي تربيتي روحيه پياوړي شي بيابه دهغوی دتيرې ورځې د غيرحاضرۍ پوښتنه وکړي،حاضري به واخلي. دتيرلوست په هکله به پوښتنه به وکړي اوبيا به کورنی دنده وگوري. کورنی دنده داسې نه چې يوازې ديوڅوکسو بلکې دټولو زده کوونکوکورنی دنده به گوري، که وخت نه و،ښوونکی کولای شي چې کتابچي ترې راټولې او په وزگار وخت کې يې په دقيق ډول وگوري اولارښوونه ورته وکړي.

بیا به دلوست سرلیک پرتختې ولیکي اودلوست دسرلیک یادتصورير په هکله به له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنې وکړی. وروسته به لوست پیل کړي. په لارښودکتاب کې دلوست ورکولو لپاره دهر لوست لپاره چوکاټ ورکړل شوی. له چوکاټ سره برابربه وړاندې ولاړشي. موږ دښوونکي لپاره په چوکاټ کې دلوست شمیره، اودلوست وخت لیکلی دی .ترې وروسته دلوست نوم اودلوست موخې،انګیزوي پوښتنې،دښوونکي فعالیتونه، ارزونه،کورنۍ دنده اود ښوونکي له پاره په هغولوستونو کې اضافي معلومات راوړل شوي دکومو له پاره چې اړین وو.

موږ په لومړي، دویم اودریم لوست مقدماتي فعالیتونه،دلوست میتودونه اودلوست مرستندوی توکي لیکلي خوپه وروستیو جدولونو کې موراوړي نه دي ښوونکی باید په ټولولوستونو کې دلومړي جدول په ډول مقدماتي فعالیتونه، میتودونه اومرستندوی توکي په پام کې و نیسي.

## لومړی لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | حمد |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د حمد پرمفهوم به وپوهیږي.<br>– د الله ﷻ صفتونه به وپېژني.<br>– له شعر او نظم سره به بلدتیا پیدا کړي.<br>– د لغتونو د معنا او په جملو کې به یې د کارونې مهارت پیاوړی شي.<br>– له حمد او د الله ﷻ له صفتونو سره به یې مینه پیداشي. |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړي او د ډله ییز فعالیتونه |
| د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، قلم، کتابچه او نور |
| ارزونه | شفاهي ارزونه، عملي کار، د لوستلو، لیکلو او ډلییز کار څارل او پایلې په کتابچه کې لیکل. |
| د زده کړې او تدریس (فعالیتونه) | سلام، احوال، روغبړکول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د نوي لوست پیداکول. |
| | انګیزوې پوښتنه:<br>– آیا تاسو پخوا حمد لوستی و؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی په لوړ او مناسب غږ لوست لولي او پر مفهوم يې خبرې کوي.
– ښوونکی زده کوونکوته لارښوونه کوي، چې په خپله منځ کې متن ولولي.
– ښوونکی دزده کوونکو تیروتنې سموي اوهغوی ته لارښوونه کوي .
– له زده کوونکوڅخه درو تنو ته دنده سپاري، چې په وارسره د حمد یوه یوه برخه ولولي .
– ښوونکی زده کوونکي هڅوي، چې دټولګیوالو په مخ کې دلوست لنډيزووایې .
– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نیمګړې جملې بشپړاوتمرین کړي
– ښوونکی دوه زده کوونکي د تختې مخې ته رابولي، ورته سپارښتنه کوي چې په وارسره د حمد په اړه خبرې وکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | چې په ده شي هغه کار په هيچانه شي، هر توانا دده تر توان پورې ناتوان دی<br>شاعر وايې هغه کار چې الله ﷻ يې کولای شي، بل هیڅوک يې نه شي کولای. هر زورور د ده په وړاندې کمزوری دی. |
| ارزونه | ښوونکی د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره له زده کوونکو د لوست په باب پوښتنې او د هغوی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | حمد د لوی الله ﷻ صفتونه بیانوي، موږ ټول کتابونه په بسم الله او حمد پيل کوو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته دنده سپاري، چې په کورونو کې حمد وليکي او بله ورځ يې په ټولګي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دویم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **نعت** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د حضرت محمدﷺ شخصیت به وپیژني.<br>– د حضرت محمدﷺ له ژوند سره به اشنا شي.<br>– د حضرت محمدﷺ د پیدایښت، ورکتوب، ځوانۍ او پیغمبرۍ په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د حضرت محمدﷺ او د هغهﷺ کورنۍ به نورو ته وپیژني.<br>– د حضرت محمدﷺ سنتو سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | – لوستل، لیکل، پوښتنې، ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یوکسیز فعالیتونه. |
| د تدریس وسیلې | – درسي کتاب، توره تخته، تباشیر، تخته پاک، قلم، کتابچه او داسې نور... |
| ارزونه | – شفاهي ارزونه، عملي کار، پوښتنې او ځوابونه. |
| د زده کړې او تدریس (فعالیتونه) | – لومړني فعالیتونه: زده کوونکو ته سلام اچول، ستړي مه شي ویل، د حال احوال پوښتنه، حاضرۍ اخیستل د ټولګي تنظیمول، د کورنۍ دندې کتنه، له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوي لوست پیل. |
| | د انګیزې رامنځ ته کول:<br>– تاسو د حضرت محمدﷺ کوم کوم صفتونه پېژنئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی په لوړ او مناسب غږ لوست لولي زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.
– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې متن سم ولولي ښوونکی مرسته ورسره کوي.
– ښوونکی د زده کوونکو هغه جملې چې پرتختې لیکلي، سموي تېروتنې سموي او د نوو لغتونو په معنا او کارونه کې ورسره مرسته کوي.
– ځو زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې دټولگي مخې ته راشي په وارسره دلوست لنډمفهوم دې نورته ووایي.
– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وارسره د تختې مخې ته راشي او له کتاب څخه دې یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.
– ښوونکی څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وار سره دې حضرت محمد (ص) نورو ته وروپېژني.

| ستونزمنې برخې | لکه لمرچې توره شپه رڼا رڼا ده<br>ناپوهي ته داسې لمر دی محمدرسول الله<br>شاعروایي، لکه لمر چې توره شپه رڼا کوي، د ناپوهۍ لپاره محمدرسول اللهﷺ داسې روڼ څراغ او لمر دی. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی په څو زده کوونکو نعت شریف په وارسره معنا کوي او د هغوی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | حضرت محمدﷺ د قریشو له قبیلې څخه و، دی د عبدالله زوی او د عبدالمطلب لمسی و، له کوچنیوالي څخه د ښو اخلاقو خاوند او امین و، په ۲۵ کلنۍ کې یې له بي بي خدیجېؓ سره واده کړی و او په څلویښت کلنۍ په پیغمبرۍ مبعوث شو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې د حضرت رسول اکرمﷺ د شخصیت په هکله څو لنډې جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دریم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | حضرت عمر فاروقؓ |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به د حضرت عمرؓ شخصیت وپیژني.<br>- زده کوونکي به د حضرت عمرؓ پر پله پل کیږدي.<br>- زده کوونکي به د حضرت عمرؓ د لوست نوي لغتونه زده کړي.<br>- زده کوونکي به د حضرت عمرؓ په باره کې نوروته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د متن لوستل، لیکل زده کړي.<br>- زده کوونکي به د حضرت عمر فاروقؓ له کړو وړو سره مینه پیدا کړي. |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوکسیز او ډله ییز فعالیتونه. |
| د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، قلم او کتابچه او داسې نور... |
| ارزونه | شفاهي ارزونه، عملي کار، پوښتنې او د نورو صنفي کارونو څارل. |
| د زده کړې او تدریس (فعالیتونه) | لومړني فعالیتونه: سلام اچول، د حال اواحوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل. |
| | انګیزوي پوښتنه:<br>- آیا تاسو پخوا د حضرت عمر(رض) په اړه له چا څه اوریدلي و؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی په مناسب غږ لوست لولي، زده کوونکي په ځیر سره خپلو کتابونو ته ګوري. او د مفهوم په اړه یې خبرې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي، ښوونکی څارنه کوي
- ښوونکی لارښوونه کې چې دوه تنه دې په وارسره د متن یوه یوه برخه په لوړ او مناسب غږ ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسی.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې د (دین، مبارک او اسلام) کلمې دې څو تنه په وارسره د تختې پرمخ په جملو کې استعمال او نور دې هغه پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي، چې درې تنه زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د حضرت عمرﷺ د شخصیت په اړه دې په خپله ژبه خبرې وکړي.

| ستونزمنې برخې | حضرت عمر(رض) د حضرت محمدﷺ دویم یار و، حضرت عمرﷺ له حضرت ابوبکر صدیقﷺ وروسته د مسلمانانو مشر (خلیفه) شو. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی زده کوونکي د څو پوښتنو په کولو او په صنفي فعالیتونو کې د ګډون په پام کې نیولو سره ارزوي. |
| اضافي معلومات | حضرت عمر فاروقﷺ د خپل خلافت په دوره کې ډېر هېوادونه فتح کړیدي، نوموړی په عدالت کې ستر شهرت درلود. لس کاله شپږ میاشتې او پنځه ورځې د مسلمانانو خلیفه و او د ۶۳ کالو په عمر د ابو لولو له خوا په شهادت ورسېد. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د حضرت عمرﷺ د شخصیت په اړه درې درې جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څلورم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **انسان** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– لوستل، لیکل، به زده کړې او د انسان مقام به وپیژني.<br>– له انسان او انسانیت سره به یې مینه پیدا شي<br>– نوی لغتونه به معنا او په جملو کې به یې وکارولای شي.<br>– د انسان او انسانیت په هکله به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د انسان او انسانیت په هکله به له نورو سرچینو څخه ګټه واخیستلای شي. |
| د انګیزې رامنځ ته کول | – تاسو د انسان د مقام په هکله څه اورېدلي دي؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی پر مناسب غږ لوست لولي، نوي لغتونه پرتختې لیکي او معنا یې زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې له مخې یې په کتابچو کې ولیکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي په خپله منځ کې متن ولولي.

– ښوونکی زده کوونکي پرڅو ډلو ویشي، هرې ډلې ته سپارښتنه کوي چې پخپلو کې له مشورې وروسته د هرې ډلې استازی د انسان د مقام په اړه نورو ته معلومات ورکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.

– ښوونکی څوزده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دتختې مخې ته راشي په وارسره دعلم په هکله یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.

– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د علم د ارزښت په اړه د نورو پر وړاندې خبرې وکړي.

| ستونزمنې برخې | لوی الله ﷻ انسان اشرف المخلوقات پیداکړی، په دې مفهوم چې الله ﷻ له ټولو مخلوقاتو څخه چې پیدا کړي یې دي، انسان پاک، افضل او د درناوي وړ پیداکړیدی. |
|---|---|
| ارزونه | |
| اضافي معلومات | انسان چې څان او لوی الله ﷻ وپیژني، پر امر او نهې یې عمل وکړي، خپل او د نورو حقوق وپیژني، د لوی الله ﷻ فرض پرځای کړي، د اخرت ورځ هېره نه کړي، په رښتیا داسې انسان اشرف المخلوقات دی. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته دنده سپاري چې د انسان د مقام په هکله دوې جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګی کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## پنځم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | بې پروايي |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د بې پروايۍ معنا او مفهوم وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، ليکل زده او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به له بې پروايۍ څخه له ځان ساتلو سره مينه پيدا کړي. |
| انگيزوي پوښتنه: | – تاسو ته د بې پروايي له امله کله کوم زيان اوښتی دی؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ لوست لولي. زده کوونکي خپلو کتابونو ته گوري.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې په خپلو ډلو کې د بې پروايۍ په اړه خبرې اترې وکړي، پايله يې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راشي، يو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي، هغه بل دې د املا به ډول پر تختې وليکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي، په وار سره دې د بې پروايۍ په اړه په وار سره دوې دوې جملې وليکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، يو دې د (لامبل، روغتيا، پاملرنه) کلمې پرتختې وليکي، هغه بل دې په جملو کې استعمال کړي. ښوونکی دې په ډيرې مهربانۍ سره د هغوی تېروتنې ور اصلاح کړي.

| ستونزمنې برخې | د يوه کار او فعاليت له پامه غورځول او ورته پام نه کول بې پروايي بلل کيږي، د بېلگې په ډول: يو موټروان د ښار په گڼه گوڼه کې خپل موټر ته ډير سرعت او گړنديتوب ورکوي، پرته له دې چې فکر وکړي د موټر گړنديتوب د ټکر او نورو ناوړه پيښو لامل کيږي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د څو شفاهي پوښتنو په کولو سره زده کوونکي ارزوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې د بې پروايۍ د ناوړه پايلو په اړوند يوه يا دوې کرښې وليکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپږم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ملالۍ |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>– زده کوونکي به متن سم ولوستلای شي او ملالۍ به دیوې ملي اتلې په توګه وپېژني.<br>– د ملالۍ د کړو وړو او اتلولۍ په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– زده کوونکي به نوي لغتونه په جملوکې استعمال کړای شي.<br>– زده کوونکي به د ملالۍ لاره خپله او له هېواد سره به يې مينه پيدا شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | ایا تاسو د کومې ملي اتلې په اړوند څه معلومات لرئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ لوست ولولي.

– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وار سره د متن دوې دوې جملې په لوړ او مناسب غږ ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

– ښوونکی څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د ملالۍ د شخصیت په اړوند خبرې وکړي.

– ښوونکی دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي، ورته سپارښتنه کوي چې يو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي بل دې د املا په توګه پرتختې وليکي.

| ستونزمنې برخې | نامتو ــ مشهور  یرغل – برید  اتل – قهرمان |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی څو زده کوونکي د ملالۍ د کړنو په اړه ارزوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې د ملي اتلې په اړه دې څو جملې وليکي، بله ورځ دې نورو ته ولولي. |
| اضافي معلومات | انګریزانو پر افغانستان تېری کړی و، دوی له درې خواوو (خیبر، کرمه او سپین بولدک) له لارې هېواد ته راننوتل، هغه قوه چې د بولدک له لارې هېواد ته راغلې وه، د کندهار له نیولو وروسته یې د غازي ایوب خان د ځپلو نیت درلود، په همدې ناولې نیت له کندهار څخه د میوند خوا ته وخوځېدل، پس له څه وخت انتظار څخه جګړه پیل شوه، له يوې خوا د افغان غازیانو شمېره څو وارې له انګریزانو څخه لږ وو، له بل خوا تش لاس وو او انګریزان د وخت پر پرمختللو وسلو سمبال وو، نژدې و، چې افغانان ماتې وخوري، ملالۍ چې یوه اتله او مېړمن وه، ملي بیرغ یې په لاس کې ونیوه او دا ناره یې وکړه.<br>که په میوند کې شهید نه شوې خدایږولالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه<br>د ملالۍ له نارې سره سم د افغان غازیانو وینه پر جوش راغله، له دې سره سره چې هوا هم ډېره توده وه، خو انګریزانو ته یې تاریخي او تباه کوونکې ماتې ورکړه. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اووم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **کیسه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به دکیسې پر معنا او مفهوم وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د کیسې په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.<br>– زده کوونکي به د کیسې په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – ایا تاسوکله له خپلومشرانوڅخه کومه کیسه اوریدلې ده ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی لوست لولي او تشریح کوي یې زده کوونکي ورته غوږ نیسي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکې په خپل منځ کې یودبل په مرسته لوست ولولي.

– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې څوتنه دې په وار سره د تختې مخې ته راشي د(بوخت،مېوه،عمر) کلمې د تختې پرمخ په جملوکې استعمال کړي، نوردې یې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.

– ښوونکی څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې په وار سره لاندې نیمگړې جملې پرتختې ولیکې او بیا دې تش ځایونه پرمناسبو کلموډک کړي.

۱ــ یوه ورځ.........پرلارې تېریده ۲– پاچا له سلام وروسته..........ته وویل ۳ــ مور یې.....خورو

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي، یوه یوه کیسه دې په خپله ژبه نورو ته ووایي.

| | |
|---|---|
| ستونزمني برخي | له دې کیسې څخه موږته داپایله پرلاس راځي، چې موږ د ژوند په هره پړاو کې خپل ورځني کارونه په ښه ډول سرته ورسوو، ټولنیزې گټې په پام کې ونیسو او هغه ته له ځانگړو او شخصي گټو لومړیتوب ورکړو. |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو بېلا بېلې پوښتنې کوي او په پای کې خپل زده کوونکي ارزوي او پایله یې یادداشت کوي. |
| اضافي معلومات | په پښتنو کې د ولسي نکلونو او کیسو ډیرې په زړه پورې بېلگې شته، په دې کیسوکې هم لکه د لنډیو او متلونو په څېر د پښتنو د ژوند، هیلو، غوښتنو او ارمانونو انعکاس په ډېره ښه توگه لیدلی شو. موږ په دې کیسو او نکلونو د خپل وخت د پښتنو د ژوند، فکر او نظر، هنر او نورو خواوو ښه مطالعه کولای شو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي، چې یوه یوه کیسه چې له مشرانو مو اورېدلي وي، ولیکي بله ورځ یې په ټولگي کې نورو ته ووایي. |
| ماخذونه | دولسم ټولگي درسي کتاب |

## اتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د لمر ګټې** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د لمر پر ګټو وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، ليکل زده او نوي لغتونه په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د لمر له ګټو سره مينه پيدا او په ورځني ژوند کې به ترې سمه ګټه واخيستلای شي.<br>– زده کوونکي به د لمر د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي. |
| انګيزوي پوښتنه: | – تاسو له لمر څخه څه ډول ګټه اخلی؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی نوی لوست په لوړ او مناسب غږ لولي، بيا دې زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي نوي لغتونه له معنا سره پرتختې ليکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د لمر د ګټو په اړوند بحث وکړي، پايله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي يو دې د کتاب له مخې دوې جملې ولولي، هغه بل دې د املا په ډول پر تختې وليکي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې وليکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په وار سره دې د (پايښت، نظام، مکروب) کلمې په جملو کی استعمال کړی. د نه پوهېدو په صورت کې دې ورسره مرسته وکړي.

| ستونزمنې برخې | پايښت: دوام<br>تودوخه: حرارت |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له ځو زده کوونکو د لمر د ګټو په اړوند پوښتنې کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | د لمر تودوخه مکروبونه وژني، د انسانانو او د نورو ژونديو موجوداتو د ژوند لپاره ډېره اړينه ده، د لمر د تودوخې په واسطه اوس کورونه، اوبه تود وي او نور... |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د لمر د ګټو په اړوند يوه يوه مقاله وليکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

# نهم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | زلزله |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به زلزله وپيژني<br>– ليکل، لوستل او نوي لغتونه به زده او په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به په ورځني ژوند کې له زلزلې څخه د ځان ساتنې پر لارو چارو پوه او نورو ته به په دې اړوند معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د زلزلې پر زيانونو پوه او د ځان ساتنې له لارو چارو سره به يې مينه پيدا شي. |
| انگيزوي پوښتنه: | – تاسې د زلزلې پر وخت کومو ځايونو ته ځئ؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی د زلزلې په وخت د ځان ساتنې پر لارو چارو بحث کوي او زده کوونکي ورته ځير وي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د زلزلې په اړوند بحث وکړي، پايله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه چې دوه زده کوونکي دې تختې مخې ته راشي، په وار سره دې د زلزلې په اړوند يوه يوه جمله پرتختې وليکي، نور دې پخپلو کتابچو کې وليکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د زلزلې په اړه نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د زلزلې په وخت دې له ټولگي څخه بهر راووځي او که نشي کولای د دروازو او مېزونو لاندې دې پټ شي.

| ستونزمنې برخې | لرځېدل: خوځېدل |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د لوست په پای کې له څو تنو څخه د زلزلې په اړوند پوښتنې کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | لکه چې يادونه يې شوېده، زلزله د ځمکې لړ او يا ډېر وخوځېدو او لړځېدو ته ويل کيږي.<br>چې کله کله د مالي او ځاني زيانونو لامل کيږي، له دې امله دې زده کوونکي دزلزلې د پېښېدو پر وخت له زړو او ړنگو ديوالونو څخه لرې واوسي او ځانونه دې خوندي ځايونو ته ورسوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې له زلزلې څخه د ځان ژغورلو په اړه څو لنډې جملې وليکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د ونو ګټې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د ونو پر ګټو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د ونو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د ونو کېنولو او روزلو سره مینه پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسو کله چیرته ونې کینولي دي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی په لوړ او مناسب غږ لوست لولي او د ونو په ګټو خبرې کوي زده کوونکي ورته غوږ نیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي، چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ونو د ګټو په اړه بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي په وار سره دې د (روغتیا، سمسور، پانګه) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال او نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ونو د ګټو په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

| ارزونه | ښوونکی پر دوو تنو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه يې کوي. |
|---|---|
| اضافي معلومات | زموږ هېواد د ونو لپاره ډېره ښه اوبه او هوا لري، چې په بېلابېلو سیمو کې بېلابېلې ونې ښه حاصل ورکوي او د هیواد په اقتصاد کې رغنده ونډه لري د بېلګې په ډول د میدان وردګو په ولایت کې منې، د ننګرهار په ولایت کې نارنج او مالټې او د کندهار په ولایت کې انارو ښه نتیجه ورکړېده. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې ټول زده کوونکي دې د ونو د ګټو په اړه څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## يوولسم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | میرویس نیکه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنيزې<br>● مهارتي<br>● ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د میرویس نیکه شخصیت وپیژني.<br>– زده کوونکي به متن سم ولوستلای او ولیکلای شي.<br>– زده کوونکي به نوي لغتونه زده او په جملوکې وکارولاشي.<br>– زده کوونکي به د ملي مشرانو په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>– زده کوونکي به له خپلو ملي مشرانو سره مینه پیداکړي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – تاسو له خپلو ملي مشرانو څخه کوم یو پیژنئ؟<br>– ایا تاسوته چا د ملي مشرانو په اړوند کیسې کړیدي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ لوست لولي او د میرویس نیکه د شخصیت په اړه معلومات ورکوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې دوې جملې ولولي او هغه بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په کتابچوکې ولیکي.
- ښوونکی څو تنو ته لارښوونه کوي چې د تختې مخې ته راشې د (زړه سواند، مشر، واکمنۍ) کلمې دې په وار سره پرتختې په جملو کې استعمال کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې تختې مخې ته راشي یو دې څو مفرد نومونه پرتختې ولیکي او بل دې هغه جمع کړي.

| ستونزمني برخي | یووالی: اتحاد<br>راستون: راګرځېدل |
|---|---|
| اضافي معلومات | لکه چې هرچاته جوته ده، میرویس نیکه خپلوخلکو ته د خپلواکۍ دبیرته ترلاسه کولو لپاره دپاڅون بلنه ورکړه، ټولوخلکود هغه مشري اوبلنه ومنله، میرویس نیکه له خپل میړني اولس سره یوځای خپل هیواد د پردو له لاس څخه خلاص کړ. |
| ارزونه | ښوونکی څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وار سره د موضوع په اړوند دوې دوې دقیقې خبرې وکړي او هغوی و ارزوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي، چې د میرویس نیکه په اړه لنډ معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نور ته واوروي. |
| ما خذونه | درسي او د ښوونکي لارښود کتابونه. |

## دولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د کور پاک ساتل |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د کور د پاک ساتلو په گټو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د کور پاک ساتلو پرگټو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به متن ولوستلای او نوي لغتونه به په گوته کړای شي.<br>– زده کوونکي به د پاکوالي او نظافت گټې نورو ته تشریح کړای شي.<br>– زده کوونکي به له پاکۍ اونظافت سره مینه پیداکړي.<br>– زده کوونکي به نوي لغتونه په جملوکې وکارولای شي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – تاسوکله د خپل چاپیریال د پاکۍ له پاره څه کار کړیدی |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی لوست پر مناسب غږ لولي، نوي لغتونه له معناوو سره پرتختې لیکي.
– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته څوجملې ولولي او هغه بل دې د املا په توگه پرتختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې هغه په کتابچوکې ولیکي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولگي مخې ته راشي، یو دې د کور د پاکوالي او بل دې د کور د پاکۍ د گټوپه اړوند خبرې وکړي.
– درې زده کوونکي دې دتختې مخې ته راشي د( پاملرنه، روغتیا، شړۍ ) کلمې دې په جملوکې وکاروي.
– څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي د روغتیا، ایمان او میکروب کلمې دې پر تورو وویشي.

| ستونزمني برخي | ټول هغه شیان چې زموږ په شاوخوا کې شتون لري، د چاپیریال په نوم یادیږي، باید یادونه وکړو چې د انسان د ژوند لومړی چاپیریال د هغه خپل کور دی. له دې امله هرچاته خپل کور ډیر گران وي او پاک ساتل یې دنده ده. د کور پاک ساتل د کورنۍ روغتیا ساتي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پر درو زده کوونکو د لوست یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | څنگه چې موږتاسوته څرگنده اوجوته ده چې پاکوالی د روغتیا ساتنې لپاره ډیراړین دی، له دې امله موږ تاسو ټولو ته اړینه ده چې خپل کور، کلی او ښوونځی پاک وساتو، ترڅو زموږ چاپیریال له هر ډول نارغیو څخه خوندي پاتې شي، لکه چې په حدیث شریف کې راغلي دي چې: ( پاکوالی دایمان یوه برخه ده.) که داسې څوک پیداشي چې خپلې پاکۍ ته پاملرنه نه کوي، نو هغه ته باید د پاکوالي په اړه لارښوونې وشي. ترڅو خپل ځان، کور، کلی او چاپیریال پاک وساتي. |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په خپله خوښو خپلو کوررونو د پاکوالي په اړه یوڅو کرښې ولیکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دیارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د ځنګلو نوګټې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د ځنګلونو پرګټو وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به د ځنګلونو او عامه شتمنيوله ساتلوسره مينه پيداکړي.<br>– زده کوونکي به د ځنګلونو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د ځنګلونو دودونو ته خلک وهڅوي.<br>– زدکوونکي به پرچاپيريال د ځنګلونو پر اغېزو وپوهيږي. |
| انګيزوي پوښتنه: | – ايا تاسې ويلای شی چې ځنګلونه پر چاپيريال څه اغېزې لري؟ |

## د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی په لوړ او مناسب غږ لوست لولي او د ځنګلونو پر ګټور خبرې کوي.
- ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي،چې د لوست متن په خپل منځ کې ولولي.
- ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دوه تنه د تختې مخې ته راشي يو دې د کتاب له مخې ورته څو جملې ووايي او هغه بل دې د املا په ډول پرتختې وليکې، نور زده کوونکي دې هغه د تختې له مخې په خپلوکتابچوکې وليکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې په وار سره د هغو سيمو او ولايتونو نومونه واخلي، چې ځنګلونه پکې شتون لري.
- ښوونکی لارښوونه کوي، چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ځنګلونو د ګټو په اړوند خبرې وکړي.

| ستونزمنې برخې | د پکتيا، کونړ، لغمان، ننګرهار، سمنګان، بادغيس او د هرات په ولايتونو کې ځنګلونه شته. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه د پوښتنو په کولو هغوی ارزوي. |
| اضافي معلومات | زموګران هيواد افغانستان يو غرنی هيواد دی، چې د هيواد د ډيرو ولايتونو لکه: پکتيا، پکتيکا، ننګرهار، کونړ، نورستان، لغمان، سمنګان، بادغيس، او هرات ولايتونو غرونه له ځنګلونو ډک دي چې له ځينو يې قيمتي وچې ميوې، لکه چارمغز، جلغوزي او پسته ترلاسه کيږي او نورو هيوادونو ته صادريږي، له بې ميوې ونو يې ډول ډول ګټې اخيستل کيږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د ځنګلونو د ګټو په اړوند درې جملې وليکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څوارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د ماشومانو حقونه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د ماشومانو پر حقونو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د ماشومانو د حقونو په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل زده او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د ماشومانو حقونو ته په ورځني ژوند کې پاملرنه او مینه به ورسره پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسو د ماشومانو حقونو ته په ورځني ژوند کې څه ډول پاملرنه کوئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی یو زده کوونکي ته لارښوونه کوي چې په ټولګي کې ودریږي متن دې د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.
- ښوونکی پر لوست او د ماشومانو د حقونو په اړوند څرګندونې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې متن په خپل منځ کې ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ماشومانو د حقونو په اړوند بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته په ټولګي کې واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي، هغه بل دې پر تختې د املا په توګه ولیکي، نور زده کوونکي دې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ماشومانو د حقونو په اړه دوې دوې جملې پرتختې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې نارینه بل دي ښځینه نومونه پرتختې ولیکي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | څنګ : بغل، یو خوا<br>وده : نمو کول، سترېدل |
| ارزونه | ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې په وار سره د ماشومانو د حقونو په اړوند یوه یوه جمله پر تختې ولیکي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | مورِ باید ماشومانو ته درناوی ولرو، د دوی خبرو ته غوږ ونیسو، دوی ته د زده کړې زمینه برابره کړو، له دوی څخه د دوی له توان څخه پورته د کار کولو هیله ونه لرو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د ماشومانو د حقونو په اړوند څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## پنځلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د تمباکو زیانونه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د تمباکو په زیانونو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به نوي لغتونه زده او په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د تمباکو د زیانونو په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د تمباکوله کارونې څخه ځانونه وساتلای شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ایا تاسو ته پخوا چا د تمباکو د زیانونو په اړه څه ویلي و؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی یو زده کوونکی ته لارښوونه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي، نوی لوست دې په لوړ غږ ولولي نور زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر واوسیږي ښوونکی څارنه کوي.
- ښوونکی د تمباکو د لوست او زیانونو په اړوند څرګندونې کوي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی زده کوونکي په ډلوویشي، هرې ډلې ته سپارښتنه کوي چې په خپل منځ کې د تمباکو د زیانونو په اړوند خبرې وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازی نورو ته ووایي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته څو جملې ووایې، هغه بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور دې په کتاپچوکې ولیکي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې دري تنه د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د تمباکو د زیانونو په اړه یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | سګرټ یاچلم څکول دانسان سږوته زیان رسوي او په ډېر لږ وخت کې په نري رنځ اخته کیږي همداسې نور ډېر زیانونه لري. |
| ارزونه | ښوونکی د خپلو یاداشتونو په پام کې نیولو سره ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | له تمباکو او سګرټو څخه د سږو ناروغي چې پایله یې نری رنځ (توبرکلوز ناروغي) ده، پیدا کیږي، همدارنګه د نسوارو له کارونې او استعمال څخه د خولې بد بویي او د ګېډې ناروغي پیداکیږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې ټول دې د تمباکو د زیان په اړه درې جملې ولیکې، بله ورځ دې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپاړسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **نوکانوته پاملرنه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د نوکانو د اوږدېدو په زیانونو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د اوږدو نوکانو د زیانونو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به خپلې روغتیاته پاملرنه وکړي.<br>– زده کوونکي به په متن کې نوي لغتونه زده او په جملوکې وکارولی شي.<br>– زده کوونکي له خپلې پاکې او نظافت سره مینه پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | ښوونکی ستاسو د نظافت د کتلو پر وخت کومو کومو شیانو ته پاملرنه کوی. |

## د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی نوی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي. زده کوونکي یې ورسره تکرار وي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو منځو کې د او اوږد ونو کانو د زیانونو په اړه خبرې وکړي او پایله دې یو تن نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته د اوږدو او نوکانو د زیانونو په اړه دې خبرې وکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې لاندې نیمګړې جملې په مناسبوکلموسره بشپړې کړي.

که چیرې نوکان مو..... شي، کوم کوم زیانونونه رامنځته کوي. موږبایدخپل....... پاک وساتو. (اوږده، نوکان )

| ستونزمنې برخې | د نوکانو له اوږدیدو او چټلیو څخه ډول ډول ناروغي پیدا کیږي. له دې امله موږ باید خپل نوکان تل پاک ساتو. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د خپلو یادداشتونو ته په پاملرنې او څو پوښتنو په کولو سره زده کوونکي ارزوي. |
| اضافي معلومات | که چیرې د چا نوکان اوږده او له چټلیو ډک وي، نو روغتیا ته یې زیان رسوي، له دې امله باید خپلو نوکانو پاکې ته پاملرنه وکړو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د اوږدو او چټلو نوکانو د زیانونو په اړوند درې درې جملې ولیکې. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اووه لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | علم |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د علم پر مفهوم او ارزښت به پوه شي.<br>– د علم له زده کړې سره به یې مینه زیاته شي.<br>– د علم په خپرولو کې به هڅه او هاند وکړي.<br>– نوي لغتونه به معنا او په جملو کې وکارولای شي.<br>– د علم پرمفهوم له پوهېدو وروسته به یې د زده کړې تلوسه زیاته شي.<br>– د علم په زده کړه کې به له نورو سره مرسته وکولای شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسو چیرته او د څه شي زده کړه کوئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی زده کوونکوته لارښوونه کوي چې دلوست متن پخپلو منځوکې ولولي. او ښوونکی څارنه کوي.

– ښوونکی زده کوونکي پرډلوویشي، هرې ډلې ته سپارښتنه کوي، چې په خپل منځ کې له مشورې وروسته د لوست لنډیز نورو ته ووایي، ښوونکی مرسته اوڅارنه کوي.

– ښوونکی څوزده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې مخې ته راشي په وارسره د علم په هکله یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.

– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د علم د ارزښت په اړه د نورو په وړاندې خبرې وکړي

| | |
|---|---|
| ستونزمني برخي | له زانګو څخه تر ګوره زده کړه وکړئ. په دې معنا چې زده کړه ټاکلی وخت نه لري او د ژوند په اوږدو کې باید هر وخت علم او پوهه ترلاسه کړو. |
| ارزونه | ښوونکی خپل زده کوونکي د څو پوښتنو په کولو او په صنفي فعالیتونو د ګډون په پام کې نیولو سره ارزوي. |
| اضافي معلومات | وایي: علم داسې خزانه ده چې خلاصېدل نه لري.<br>علم او پوهه د انسا ن ارزښتمن او قیمتي زیور او ښکلا ده.<br>د اسلام سپیڅلي دین د هغه ارزښت له مخې چې علم یې لري، پر هر ښځینه او نارینه مسلمان د علم زده کړه فرض کړې ده. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې د علم د ارزښت په هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې د نورو پر واړاندې ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اته لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ګلان |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به ډول ډول ګلان وپیژني.<br>– زده کوونکي به د ګلانو پر ګټو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د ګلانو له روزلو سره مینه پیداکړي.<br>– زده کوونکي به د ګلانو د روزلو او ګټو په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ایا تاسو کله له ګلانو څخه ګټه اخیستې ده؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی نوی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي او د ګلانو په اړوند معلومات ورکوي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د ګلانو د ګټوپه اړه خبرې وکړي، بیا دې پایله د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته دوې جملې دکتاب له مخې ولولي، هغه بل دې د املاپه توګه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې هغه د تختې له مخې په خپلو کتابچوکې ولیکې.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي د ګلانو د ګټوپه اړه دې خبرې وکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.

| ستونزمنې برخې | چنبیلي، فرشي، پتوني، داودي، یاسمن، کشمالي او داسې نور ګلانو نومونه دي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي، هغوی ارزوي. |
| اضافي معلومات | ډیر هېوادونه له ډول ډول ګلانو څخه بېلابېل درمل او عطر جوړوي چې د انساني ژوند په بېلا بېلو برخو کې ورڅخه ګټه اخیستل کیږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د خپلې سیمې د ګلانو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته وروپیژني. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## نولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د مېوو پوستكو اچولو ته پاملرنه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د مېوو پوټکو د بې ځايه اچولو په زيانونو پوه شي.<br>– زده کوونکي به د متن جملې ولوستلای شي او نوي لغتونه به په جملو کې استعمال کړای شي.<br>– زده کوونکي به د مېوو پوستكو د بې ځايه اچولو د زيانونو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د مېوو پوستكو او نورو خځلو له بې ځايه اچولو څخه ډډه وکړي. |
| انګيزوي پوښتنه: | – تاسو دخپل چاپيريال دپاک ساتلو لپاره څه کولای شئ. |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي، د ستونزو په اړوند له ښوونکي پوښتنې کوي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د لوست يوه يوه برخه دې پر لوړ او مناسب غږ سره ولولي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، هريودې په وار سره د مېوو پوستكو د زيانونو په اړه دې نورو ته معلومات ورکړي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د ګلانو د کرلو په اړه دې نورو ته معلومات ورکړي.

– زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي د ګلانو نومونه دې واخلي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | ژوبل ــ خوږاوټيي روغتون – شفاخانه ازموينه ــ امتحان |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو پوښتنې کوي، هغوی ارزوي |
| اضافي معلومات | زده کوونکي چې مېوې او نور تازه شيان خوري، لومړی يې بايد پر پاکو اوبو پرمينځي، بيا دې وخورې پوټکي دې بې ځايه نه غورځوي، ترڅو د چاپيريال د ککړتيا او ناروغيو لامل نه شي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د مېوو د پوستكو د بې ځايه اچولو پر زيانونو څو لنډې جملې وليکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شلم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **راډیو** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به راډیو وپیژني.<br>– زده کوونکي به د راډیو اړتیا او ګټورتیا په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>– زده کوونکي به د راډیو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له راډیو یې خپرونو سره مینه پیداکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | تاسو د څه شي په وسیله د هېواد او نړۍ له حالاتو څانونه خبره وی؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی نوی لوست په مناسب غږ لولي او زده کوونکي یې ورسره په مناسب غږ تکرار وي.
- ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې لوست په خپل منځ کې ولولي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې ځو لغتونه ولولي، هغه بل دې پرتختې ولیکي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې درې زده کوونکي دې په مشوره سره په متن کې عام اوخاص نومونه په ګوته او بیا دې یې یو زده کوونکي پرتختې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې په خپل منځ کې د راډیو د اړتیا او ګټورتیا په اړه خبرې وکړي، پایله دې یې یو تن نورو ته واوروي.

| ستونزمنې برخې | د بېسیم تلګراف له جوړېدو څخه وروسته الماني پوه هرتس ثابته کړه چې راډیو په فضاکې د موجونو قوه د څپو په واسطه لېږدوي، همدرانګه د انسانانو او نورو غږونو څپې بریښنایي کولی شي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی ځو تنه تختې ته رابولي، پر هر یوه د تختې پرمخ یوه یوه جمله لیکي اوارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | د ایټالوي پوه مارکوني د تجربو له مخې په ۱۸۹۵ زیږدیز کال راډیو جوړه شوه او ډېر ژر یې پراختیا وکړه، زموږ په هېواد کې د غازي امان الله خان د واکمنۍ په دوره ۱۳۰۶ هجري لمریز کال کې راډیو جوړه او په خپرونو یې پیل وکړ. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د راډیو د اړتیا او ګټورتیا په اړه ځوځو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## يوويشتم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | کاغذ |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنيزې<br>● مهارتي<br>● ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به کاغذ وپيژني.<br>– زده کوونکي به د کاغذ اړتيا او ګټورتيا په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>– زده کوونکي به د کاغذ په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د کاغذ له ساتلو او سمې ګټې اخيستلو سره مينه پيدا کړي. |
| انګيزوي پوښتنه: | – تاسې د څه شي پرمخ خپلې ليکنې کوئ؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی زده کوونکي ته سپارښتنه کوي چې لوست په خپل منځ کې لولي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، يو دې ورته د کتاب له مخې څو جملې ولولي، هغه بل دې پرتختې د املا په ډول وليکي، نور دې هغه د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې وليکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې په خپل منځ کې د کاغذ د اړتيا په باب خبرې وکړي، پايله دې يې يو تن نورو ته واوروي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه زده کوونکي دې له کاغذ څخه د ګټورې کار اخيستنې په اړوند خبرې وکړي.
- ښوونکی څو زده کوونکی تختې مخې ته راغواړي يو ورته د کتاب له مخې يو يو نعت وايي بل يې پرتختې ليکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی څو تنه تختې ته رابولي، پر هر يوه د تختې پرمخ يوه يوه جمله ليکي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکی دې د کاغذ د اړتيا په اړه درې درې جملې وليکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دوه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | احمدشاه بابا |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به احمدشاه بابا وپیژني.<br>– زده کوونکي به د احمدشاه بابا په باره کې خبرې وکړای شي.<br>– زده کوونکي به د متن لوستل او لیکل زده کړي.<br>– زده کوونکي به د احمدشاه بابا خدمتونو سره مینه پیدا کړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – څوک به ووایي چې د هېواد کوم واکمن ته د بابا لقب ورکړل شوی؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی نوی لوست پرمناسب غږ لولي. او زده کوونکي خپلو کتابونو ته گوري.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې هره ډله دې په خپل منځ کې نوی لوست ولولي، بیا دې د هرې ډلې استازی په وار سره د ټولگی مخې ته راشي، پایله دې نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې یو زده کوونکی دې لاندې نیمگړي جملې پر مناسبو کلمو بشپړې کړي.

د احمدشاه بابا اصلي نوم ................. دی. خاورو ته

په کندهار کې ........... وسپارل شو. احمدخان

| ستونزمنې برخې | په متن کې د احمدشاه بابا دوه بیتونه موږ ته دا پیغام راکوي چې خپله خاوره او خپل هېواد د هر شي په بدل کې نه ورکوو، احمدشاه بابا د خپلې خاورې، دښتو غرونو ډېره ستاینه کړې |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د خپلو یاداشتونو او څو پوښتنو له مخې د زده کوونکو ارزونه کوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د احمدشاه بابا اړه یو څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دروېشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | خبرې اترې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د خبرو اترو پر اهمیت وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به په متن کې نارینه، ښځینه، عام او خاص نومونه په ګوته کړي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي له نورو سره خبرې اواترې وکړي.<br>– زده کوونکي به له خبرو کولوسره مینه پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | تاسو ویلای شئ هغه معلومات چې د پوښتنو او ځوابونو په پایله کې ترلاسه کیږي څه ویل کیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ د خبرو اترو لوست توضیح کوي. او زده کوونکي ورته غوږ نیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست په خپل منځ کې ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي او یو ډیالوګ دې ترسره کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څوتنه زده کوونکي دې په وار سره د (مننه، ژمنه، رخصت) کلمې د تختې پرمخ په جملوکې استعمال کړي، نور زده کوونکي دې هغه په کتابچوکې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په خپل منځ کې دې د خبرو اترو تمثیل وکړي.

| ستونزمني برخې | |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی په څو زده کوونکو د خبرو اترو تمثیل کوي او د هغوی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | د پوښتنو او ځوابونو په پایله کې چې کوم معلومات ترلاسه کیږي. دې بهیر ته خبرې اترې (ډیالوګ) ویل کیږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلوکتابچو کې یو یو ډیالوګ ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې دوه تنه نورو ته تمثیل کړي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څلرويشتم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **کيسۍ** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به د کيسۍ پر مفهوم وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به پر نوو لغتونو وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به د کيسۍ په باب نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له کيسۍ سره مينه پيداکړي.<br>– زده کوونکي به د کيسو د ليکلو سره مينه پيدا کړي. |
| انگيزوي پوښتنه: | تاسو پخوا کله کومه کيسۍ له چا اورېدلې ده؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی لوست پر لوړ او مناسب غږلولي او زده کوونکي يې ورسره تکرار وي.
- ښوونکی د کيسۍ په اړوند له زده کوونکو سره خبرې اترې کوي او د هغه د ګټورتيا او ساتلو په هکله معلومات ورکوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څلور ډلې دې جوړې شي، دوې ډلې دې له دوو نورو د کيسۍ پوښتنه وکړي، هغوی دې ځواب پيدا کړي. بيا دا درې ډلې له نورو کيسۍ وپوښتي هغوی دې ځواب ووايي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې يوه يوه کيسۍ له نورو وپوښتي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د کيسۍ په اړه خبرې وکړي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د خپلو ياداشتونو او څو پوښتنو په کولو سره ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | د ځينو ځانګړتياوو له مخې د يو شي پېژندل يا معلومولو ته کيسۍ وايي، دا ځانګړتياوې هم په نثر او هم په نظم دواړو کې بيانيږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې د کورنۍ د غړو په مرسته څو څو کيسۍ پخپلو کتابچو کې وليکي، بله ورځ دې هغه ټولګي ته راوړي، نورو ته دې واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ترافیکي لارښوونې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به پر ترافیکي لارښوونو پوه شي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل زده او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د ترافیکي لارښوونو په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به په ورځني ژوند کې له ترافیکي لارښوونو ګټه واخلي او له زده کړې سره به یې مینه پیدا شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسو کله له ترافیکي ستونزو سره مخامخ شوي یاست؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی د ترافیکي لارښوونو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ترافیکي نښو او لارښوونو په اړه خبرې اترې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازې نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د (احتیاط، غاړه، څراغ) کلمې په جملو کې وکاروي، نور دې د تختې له مخې خپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په وار سره دې د ترافیکي لارښوونو په باب نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې ترافیکي لارښوونو ته په پاملرنه سره له سړک څخه تېرېدل تمثیل کړي.

| ستونزمنې برخې | څراغ: چراغ<br>ځلېدل: پرکېدل |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې د متن یوه یوه برخه ولولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | زده کوونکي باید ډېره پاملرنه وکړي، الله (ج) دې نه کړي چې موټر یې ونه وهي، اړینه ده چې له سړک څخه د تېرېدو پروخت د سړک دواړو غاړو ته وګوري او له سړک څخه دې تېر شي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې د ترافیکي لارښوونو په هکله څوڅو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپږ ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د وخت ارزښت |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به د وخت په ارزښت پوه شي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>- زده کوونکي به د وخت د ارزښت په باب نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به په ورځني ژوند کې له وخت څخه سمه ګټه واخلي او د خپل وخت پر ارزښت به پوه او مینه به ورسره پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | - آیا تاسې د خپلو چارو د ترسره کولو لپاره مهال وېش لرئ؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | |
| | - ښوونکی د وخت د ارزښت په باب زده کوونکو ته معلومات ورکوي. او ښوونکی یې ستونزې حل کوي.<br>- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست پخپل منځ کې ولولي.<br>- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د وخت د ارزښت په اړه خبرې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.<br>- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د وخت د ارزښت په اړه دې دوې دوې جملې پرتختې ولیکي. |
| ارزونه | ښوونکی د وخت د ارزښت په اړه له څو زده کوونکو پوښتنې کوي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | هرې شیبې ته وخت وایي. موږ باید له خپل وخت څخه ښه ګټه واخلو او له وخت سره بې پروایي ونه کړو، موږ ته باید د وخت هره ثانیه ډېره ارزښتمنه وي، څوک چې د وخت پر ارزښت نه پوهیږي، تل به له ستونزو سره مخامخ وي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د وخت د ارزښت په هکله څوڅو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اووه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | همت |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د همت په اړوند معلومات پیدا کړي.<br>– زده کوونکي به د همت لوست په زده کړې سره نوي لغتونه زده کړي .<br>– زده کوونکي به د همت لرلو په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له همت لرلو سره مینه پیداکړي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – مېړانه، ښه سلوک، نېک اخلاق، سخا او ورکړه، زړورتوب، له نورو سره مرسته د څه په نامه یادیږي؟<br>– د همت کولو په اړه څوک څه ویلای شي. |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>– ښوونکی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي او د همت په اړه معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې یو د بل په مرسته متن ولولي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، په وار سره دې دوې دوې جملې د لوړ همت په اړه ولیکي، نور دې هغه په کتابچوکې ولیکی.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې ټولې ډلې دې پخپل منځ کې د لوړ همت په اړه خبرې وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي. | |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه د بېلابېلو پوښتنو په کولو سره هغوی ارزوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د لوړ همت په اړه څوځو جملې ولیکي |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اته ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د چاپیریال پاک ساتل** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د چاپیریال پر مفهوم پوه او چاپیریال به وپیژني<br>– زده کوونکي به نوي لغتونه زده او پر لوستلو، لیکلو به وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د چاپیریال ساتلو په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له چاپیریال ساتلو سره مینه پیداکړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – تاسوکله د خپلې شاوخوا سیمې د پاکولو په حشر یا ډله ییز کار کې برخه اخیستې ده؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی زده کوونکو ته چاپیریال ورپیژني
– ښوونکی لارښوونه چې زده کوونکي دې نوی لوست خپل منځ کې یو د بل په مرسته ولولي.
– ښوونکی سپارښتنه کوي چې درې زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، د (سمسور، گټه، پاک) کلمې دې په جملوکې استعمال کړي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو د چاپیریال ساتلو پر گټو خبرې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته بیان کړي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې د ټولگي مخې ته راشي، په وار سره دې د چاپیریال ساتلو پر گټو نورو ته معلومات ورکړي.

| ستونزمنې برخې | زموږ د هستوگنې شاوخوا ته چاپیریال ویل کیږي، باید یادونه وکړو چې ځمکه، اوبه، حیوانات، نباتات، ډبرې، غرونه، ځنگلونه، ژوي او نور هرڅه د چاپیریال توکي دي چې ټول د چاپیریال په نوم یادیږي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو پوښتنې کوي او بیا یې جاج اخلي. |
| اضافي معلومات | زموږ د هستوگنې ځای او کور د ژوند لومړنی چاپیریال دی، موږ د هغې پاکۍ سمسورتیا او ښکلا ته ځانگړې پاملرنه وکړو، ترڅو روغتیا مو ساتلې وي |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د چاپیریال ساتلوگټو په اړه څو لنډې جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته په ټولگي کې واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## نه ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **واکسین** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به واکسین او د هغه ډولونه وپیژني.<br>– زده کوونکي به د واکسینو پرګټو وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي د واکسینو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د واکسینو له تطبیق سره مینه پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | آیا پوهیږئ تاسو ته یې په کوچینوالي کې د څه په نوم پیچکاري کړېده؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لوست په لوړ او مناسب غږ لولي او د واکسین په اړه معلومات ورکوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي او ښوونکی څارنه کوي
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکی دې پرتختې لیکل شوې نیمګړې جملې پرمناسبوکلموبشپړکړي.

۱– واکسین ژوندی ... دی ګټور

۲– واکسین ډیرمهم او...... دي موجود

- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې څو جملې ولولي، هغه بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي، نور دې هغه پخپلوکتابچوکې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې په وار سره د واکسین پرګټوخبرې وکړي.

| ستونزمني برخي | اړینه : ضروري شاوخوا: چارچاپیر |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی څو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي، ورته سپارښتنه کوي، چې پرتختې د چاپیریال په هکله یوه یوه جمله ولیکي او هغوی ارزوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې د چاپیریال ساتلوپه هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | رښتیا ویل |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د رښتیا ویلو پر گټو او ارزښت وپوهیږي.<br>– زده کوونکي لوستل، لیکل به زده او په جملو کې به یې د کلمو په استعمال وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به د رښتیا ویلو په اړه نوروته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له رښتیا ویلوسره مینه او عادت پیدا کړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | څوک ویلی شي چې دروغ څه زیانونه لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی نوی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي. زده کوونکي یې ورپسې تکرار وي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي. ښوونکی دې څارنه کوي
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي په وار سره دې د نوي لوست یوه یوه برخه پر لوړ او مناسب غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې په وار سره په لوست کې عام او خاص نومونه په گوته او بیا دې پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې هغه په کتابچو کې ولیکي.

| ارزونه | ښوونکي پرڅو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي او د هغوی ارزونه کوي. |
| --- | --- |
| اضافي معلومات | کله چې موږ تېروتنه کوو، ځان او یا نورو ته زیان اړوي، باید د پوښتنې پروخت رښتیا وو ایو او له دروغو ویلو څخه ډډه وکړو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې درښتیا ویلوپه اړوند څو څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## يودېرشم لوست

## د تدریس د لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | افغانستان |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به متن سم ولوستلای اوولیکلای شي.<br>– زده کوونکي به خپل هېواد افغانستان وپېژني.<br>– زده کوونکي به د افغانستان په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له خپل هېواد افغانستان سره مینه پیداکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | تاسوپوهیږئ زموږ د هېواد نوم څه دی؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی زده کوونکو ته د خپل هېواد افغانستان په اړه څرګندونې کوي.
– ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یودې دکتاب له مخې څوجملې ولولي، هغه بل دې پرتختې د املا په توګه ولیکي، نور دې په کتابچوکې ولیکي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د خپل هیواد په اړه نورو ته خبرې وکړي.

| ستونزمني برخي | افغانستان د اسیا په لویه وچه کې پروت دی. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له لوست وروسته له څو زده کوونکو د هیواد د څلورو خواوو پوښتنه کوي او هغوی ارزوي |
| اضافي معلومات | د افغانستان ټول اوسېدونکي افغانان او سره ورونه دي. ټول په ګډه ددې هېواد په ساتنه او بیا جوړونه کې د ورونو په شان ګډون کوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د افغانستان د پیژندګلوۍ په هکله لنډې جملې ولیکي. |
| ماخذونه | درسي او لاربنود کتابونه |

## دوه دېرشم لوست

## دتدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **خواړه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>– زده کوونکي به ورځني خواړه وپيژني او د خوړو په اړتياوو به پوه شي.<br>– زده کوونکي به د ورځنيو خوړو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له خپلې خوښې سره له خوړو ګټه واخلي خپلې روغتيا ته به پاملرنه وکړي او له اړينو او پاکو خوړو سره به يې مينه پيدا شي. |
| انګيزوي پوښتنه: | آيا تاسې د ورځنيو په خوړلو کې خپلې روغتيا ته پاملرنه کوئ؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست په ګډه ولولي. او ښوونکی څارنه کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د خوړو په اړه خبرې وکړي، پايله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي (انرژي، قوت، اړتيا) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې وليکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د خوړو په اړه دې نورو ته معلومات ورکړي.

| ستونزمنې برخې | انرژي: د بدن تودوخه<br>اړتيا: ضرورت |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه د خوړو په اړه پوښتنې کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | خواړه زموږ په بدن کې انرژي برابروي، چې د هغې انرژۍ په وسيله موږ ټول جسمي او فکري کارونه ترسره کوو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د خپلې سيمې د يو ډول خوړو په اړوند څو کرښې معلومات وليکي او بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## درې دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | خبرې اترې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د خبرو اترو پر اهمیت وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به په متن کې نارینه، ښځینه، عام او خاص نومونه په ګوته کړي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي له نورو سره خبرې اواترې وکړي.<br>– زده کوونکي به له خبرو کولوسره مینه پیدا کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | تاسو ویلای شئ هغه معلومات چې د پوښتنو او ځوابونو په پایله کې ترلاسه کیږي څه ویل کیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ د خبرو اترو لوست توضیح کوي. او زده کوونکي ورته غوږ نیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست په خپل منځ کې ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي او یو ډیالوګ دې ترسره کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څوتنه زده کوونکي دې په وار سره د( شک، زحمت، برکت) کلمې د تختې پرمخ په جملوکې استعمال کړي، نور زده کوونکي دې هغه په کتابچوکې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په خپل منځ کې دې د خبرو اترو تمثیل وکړي.

| ستونزمني برخې | پایلې : نتجې                    په اوږدو کې: په جریان کې |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی په څو زده کوونکو د خبرو اترو تمثیل کوي او د هغوی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | د پوښتنو او ځوابونو په پایله کې چې کوم معلومات ترلاسه کیږي. دې بهیر ته خبرې اترې (ډیالوګ) ویل کیږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلوکتابچو کې یو یو ډیالوګ ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې دوه تنه نورو ته تمثیل کړي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## خلوردېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | سخاوت |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>– زده کوونکي به لوستل او لیکل زده کړي.<br>– زده کوونکي به د سخاوت پر مفهوم وپوهېږي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي د سخاوت په اړوند نورو ته معلومات ورکړاي شي.<br>– زده کوونکي به له سخاوت سره مینه پیداکړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | څوک چې چاته یوه څه د الله(ج) د رضا لپاره ورکوي او له بې وزلو سره مرسته کوي په څه نامه یادیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی نوی لوست په لوړ او مناسب غږ لولي. او زده کوونکي ورته غوږ نیسي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست پخپل منځ کې ولولي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلوکې د سخاوت د گټواو اجرونو په هکله بحث وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې څوتنه دې په وار سره دتختې مخې ته راشي، د (سخاوت  عمل، بې وزله، توان) کلمې دې په جملوکې استعمال کړي، نور دې هغه په کتابچو کې ولیکی.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې څو تنه دې په وار سره د ټولگي مخې ته راشي او د سخاوت په اړه خپل معلومات نورو ته ووایي.

| ستونزمني برخي | ښه عمل: یعنې غوره اومنلی کار<br>بې وزله : محتاج، اړ، خوار، غریب مسکین |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی څوتنوته لاښوونه کوي چې د ټولگي مخې ته راشې، په وار سره دې د سخاوت په اړه خبرې وکړي، له دې لارې ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | سخاوت داسلام په سپڅلي دین کې ډېر ښه اوغوره عمل دی، که چیرې یوڅوک دخپل مال، پیسواو نوروشیانو څخه یو څه د الله (ج) درضالپاره ورکړي، دې ته سخاوت یاسخاویل کیږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې دسخاوت په هکله څو څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

**پنځه دېرشم لوست**

**د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه**

| د لوست موضوع | **د مور او پلار خدمت** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د مور او پلار په مقام او حق وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به دا هم زده کړي، چې څنګه د مور او پلار خدمت وکړي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي چې د مور او پلار د خدمت په هکله نورو ته یوڅه ور زده کړي.<br>– زده کوونکي به له مور او پلار سره مینه پیداکړي او په پوره مینه او اخلاص به یې خدمت کوي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ایا پوهیږئ چې پرتاسو څوک ډېر حق لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست لولي او ښوونکی څارنه کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې هر ډله دې پخپل وار سره د مور او پلار د خدمت په هکله په خپل منځ کې خبرې وکړي. پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او لاندې نیمګړې جملې دې بشپړې کړي.

۱– جنت د مور او پلار تر..........لاندې دي. رسول (ص)

۲– له مور او پلار سره په مرسته لوی الله (ج) او د هغه ..... خوشحالیږي. پښنو

- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه د ټولګي مخې ته راشي، هر یو دې په وار سره د مور او پلار د خدمت په هکله خبرې وکړي.

| ستونزمني برخي | حدیث شریف : د حضرت محمد( ص) ویناوې دي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکود لوست یوه یوه برخه لولي اوارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | ګرانو زده کوونکو د خپل مور او پلار خدمت وکړئ، چا چې د مور او پلار خدمت وکړ، هغه به په دې دنیا او هغې دنیا بریالی او سر لوړی وي، ځکه حضرت محمد( ص) فرمایلي دي: جنت د مور او پلار تر پښو لاندې دی. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو او خدمت په هکله څو کرښې معلومات ولیکي، بله ورځ دې نورو ته په ټولګي کې واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپږدېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **نوم** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به نوم وپیژني.<br>– زده کوونکي به د ( وړانګه، څوکۍ، وېره ) کلمې په جملوکې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د نوم په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د نوم له پېژندنې سره مینه پیداکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ایا تاسو پخوا د نوم په اړه معلومات درلودل؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي پخپل منځ کې لوست ولولي. او ښوونکی ارزونه کوي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د ( وړانګه، څوکۍ او ویره) کلمې په جملو کې وکاروي، نور دې په کتابچوکې ولیکي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره داسې جملې پرتختې ولیکي چې نوم پکې راغلي وي، نور دې هغه په کتابچوکې ولیکي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشې او د نوم په اړوند دې معلومات ورکړي.

| ستونزمني برخي | وړانګه : شغله دخالت: لاسوهنه |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د لوست په پای کې له څو زده کوونکو پوښتنه کوي او د هغوی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | نوم هغه کلمه ده چې له زمانې پرته د انسان، حیوان و نبات او نورو شیانو نومونه کوي. لکه: اجمل، ملالۍ، غوا، پسه، تخته، ګیلاس او داسې نور... |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې درې درې اسمي (نومیزې) جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واورايي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اووه دیرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د چاپ صنعت |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به لوست سم ولوستلای او ولیکلای شي.<br>– زده کوونکي به د چاپ له صنعت سره بلدتیا پیداکړي.<br>– زده کوونکي به د چاپ صنعت په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د چاپ له صنعت سره مینه پیداکړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – تاسو کله د چاپ د صنعت په اړه له چا څخه څه اورېدلي دي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی د چاپ د صنعت په اړوند معلومات ورکوي. او متن لولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د چاپ د صنعت په اړوند دې یوه یوه جمله پرتختې ولیکي، نور دې هغه په کتابچوکې ولیکي.
- ښوونکی درې درې زده کوونکي په وارسره د تختې مخې ته راغواړي یو ورته د لوست له مخې املا وایي دویم یې لیکي او دریم یې نیمگړتیا نیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې درې تنه دې په وار سره د چاپ صنعت په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د چاپ صنعت په لوست کې نومونه په گوته کړي.

| ستونزمني برخي | لېږد: له یوه ځایه بل ځای ته انتقال<br>وسیله : واسطه |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکو په وار سره د لوست یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلوکتابچو کې د چاپ صنعت نورو ته ورو پیژني. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اته دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

<table>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">مفرد او جمع نومونه</td></tr>
<tr><td>د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي</td><td colspan="2">زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به نوم او د هغه ډولونه وپيژني.<br>– زده کوونکي به پر نوولغتونو وپوهيږي او په جملوکې به يې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به د مفرد او جمع نومونو توپير وکړای شي او په دې اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له ګرامر او په ځانګړي ډول د مفرد او جمع نومونو له کارونې سره مينه پيداکړي.</td></tr>
<tr><td>انګيزوي پوښتنه:</td><td colspan="2">– تاسوته په نورو ټولګيو کې د پښتو ګرامر د کومې برخې معلومات درکړل شوي وو؟</td></tr>
<tr><td colspan="3">د ښوونکي فعاليتونه<br>– ښوونکی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي او د نوم په اړوند څرګندونې کوي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راشي،يودې مفردنومونه اوبل دې دهغه جمع پرتختې وليکي، نوردې په کتابچوکې وليکي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي يودې دوې جملې وليکي چې مفرد نومونه پکې راغلي وي، بل دې دوې جملې وليکي چې جمع نومونه پکې راغلي وي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي مفرد او جمع نومونه دې نورو ته وروپيژني.</td></tr>
<tr><td>ستونزمني برخې</td><td colspan="2">چمتو: برابر پيل: شروع</td></tr>
<tr><td>ارزونه</td><td colspan="2">ښوونکی له څو زده کوونکود مفرد او جمع نومونو په اړوند پوښتنې کوي او هغوی ارزوي.</td></tr>
<tr><td>اضافي معلومات</td><td colspan="2">مفردنوم: هغه کلمه ده چې يوازې پر يو سړي، يو حيوان او يو شي دلالت کوي.<br>جمع نوم : هغه کلمه ده چې له يوڅخه پر زياتوسړيو، حيواناتو او شيانو دلالت کوي.</td></tr>
<tr><td>کورنۍ دنده</td><td colspan="2">ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لس مفرد او لس جمع نومونه دې په کتابچوکې وليکي، بله ورځ دې نورو ته په ټولګي کې واوروي.</td></tr>
<tr><td>ماخذونه</td><td colspan="2">درسي او لارښود کتابونه</td></tr>
</table>

## نه دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | نیکي |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به نیکي وپیژني او په دې اړوند به معلومات ترلاسه کړي.<br>– زده کوونکي به د نیکۍ او د هغې د ښېګنو په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له نوروسره له نیکۍ کولو سره مینه پیداکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – له چاسره مرسته او ښېګنه په څه نوم یادیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي. او ښوونکي څارنه کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي په وار سره دې په کتاب کې یو یو بیت معنا او تشریح کړي. نوردې ورته غوږ ونیسي.
- ښوونکی دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي چې یو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي، هغه بل دې د املاپه توګه پرتختې ولیکي.
- ښوونکی درې زده کوونکي په وارسره د تختې مخې ته راغواړي یو ورته د لوست څخه املا وایي بل یې لیکي او دریم یې نیمګړتیا سموي.
- ښوونکی دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې په وار سره د نیکۍ په هکله نورو ته په خپله ژبه خبرې وکړي.

| ستونزمني برخي | اړتیا: ضرورت خار: اغزی غاړه : څنډه |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکو د رحمان بابا شعر معنا او تشریح کوي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | یو څوک له یو چا سره په ژبه، لاس او مال نیکي او مرسته کوي، د ژبې په واسطه نیکي کول یو چا ته سمه لارښوونه ده. د لاس په وسیله نیکي کول د بېلګې په توګه: یو محتاج انسان ته لاس ورکول دي. همدارنګه له اړ او محتاجو انسانانو سره هر ډول مرستې ته نیکي وایي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلوکتابچوکې دنیکۍ په اړوند څو لنډې جملې مقاله ولیکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

**څلويښتم لوست**

**د تدريس د لارښود پلان**

**د تدريس وخت: ديوې اونۍ درسي ساعتونه**

| د لوست موضوع | **متلونه** |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به متلونه وپيژني او پر مفهوم به يې وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به د لوست نوي لغتونه زده او په جملوکې به يې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به متلونه نورو ته توضيح کړای شي.<br>– زده کوونکي به له متلونو سره مينه پيدا کړي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – لنډو منظمو او منثورو مطلبونو ته څه وايي؟<br>– که غر لوړ دی په سر يې لار ده. دې لنډې جملې ته څه وايي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | |
| – ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست ولولي د اړتيا په وخت دې ورسره مرسته وکړي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي د ټولگي مخې ته راشي، په وارسره دې په کتاب کې راغلو متلونو څخه پر يو يو خبرې وکړي.<br>– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي په وار سره دې دوه دوه متلونه پرتختې وليکي، نور دې د تختې له مخې په کتابچوکې وليکي.<br>– ښوونکی دوه تنه د ټولگي مخې ته راغواړي چې په وار سره درې متلونه ووايي. | |
| ستونزمني برخي | پخې: په تول پوره مسجع: وزن او قافيه لرونکې.<br>منثور: په نثري ډول |
| ارزونه | ښوونکی له لوست څخه وروسته درو تنو ته دنده سپاري، چې درې درې متلونه له يادو ووايي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | متلونه هغه پخې خبرې يا وينا وې دي چې موږ ته له پخوانيو علماوو، مشرانو او لويانو څخه را پاتې دي موږ يې د خپلو ورځنيو خبرو په مناسب ځای کې کاروو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی ټولو زده کوونکو ته دنده سپاري چې د خپلې کورنۍ په مرسته په سيمه کې دود او شته متلونه په کتابچوکې وليکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## يوڅلويښتم لوست

## د تدريس دلاربنود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د نوم ډولونه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده کوونکي به نوم او د هغه ډولونه وپيژني.<br>– زده کوونکي به خاص او عام نومونه وپيژني او توپير به يې وکړای شي.<br>– زده کوونکي به د نوم د ډولونو په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له نوم او د هغه له ډولونو سره مينه پيداکړي. |
| انگيزوي پوښتنې: | د کلمې په اړه څوک ويلای شي؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې لوست په خپل منځ کې يودبل په مرسته ولولي.
- ښوونکی دووتنوته دنده سپاري چې د ټولگي مخې ته راشي،په وار سره دې يوخاص اوبل عام نومونه نورو ته وروپيژني.
- ښوونکی لارښوونه چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي، يو دې يوه جمله چې خاص نوم او بل دې يوه جمله وليکي چې عام نوم پکې راغلی وي.
- ښوونکی دووتنو ته لارښوونه کوي چې د لوست يوه يوه برخه په مناسب غږ ولولي.

| ستونزمنې برخې | دنده : وظيفه لويديځ : غرب |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د لاندنيو پوښتنو په کولوسره ارزونه کوي.<br>– څوک له ياده خاص نوم تعريف کولای شي؟<br>– څوک څو خاص نومونه پرتختې ليکلای شي؟<br>– څوک متن سم لوستلای شي؟ |
| اضافي معلومات | خاص نوم : هغه نوم دی چې پريوه خاص شخص يايوځای دلالت وکړي.<br>لکه : احمدشاه بابا، کابل، ننگرهار،کندهاراو داسې نور...<br>عام نوم: هغه نوم دی چې د خاص برعکس د يوې ډلې پر ټولو غړو دلالت وکړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي پنځه خاص او پنځه عام نومونه په کتابچوکې وليکي، بله ورځ دې نورو ته په ټولگي کې واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دوه څلویښتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: دیوې اونۍ درسی ساعتونه

| د لوست موضوع | **وزر ماتی مرغه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به ښلا ښل الوتونکي وپیژني.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د الوتونکو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له الوتونکو مرغانو سره مینه او زړه سوی پیداکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسوکله پرکوم الوتونکي زړه سوی کړی دی؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي. او ښوونکی ستونزې حل کوي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ښلابېلو الوتونکو او هغوی ته د زیان دنه رسولو په هکله خبرې اترې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي هر یو دې په وارسره دوه دوه الوتونکي نورومل‌گروته ورو‌پیژني.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګې مخې ته راشي، په وارسره دې یویو سیمه ییز الوتونکی نورو ته ورو‌پیژني.

| ستونزمني برخي | ګوښه : څنګ ته |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له زده کوونکو څخه څو پوښتنې کوي او پر دوو تنو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | ګران زده کوونکي دې د ښایسته ګل په شان چې یو وزرماتی الوتونکی یې د درملنې لپاره کورته وړی و، دوی هم د الله ﷻ له مخلوق سره د مرستې روحیه ولري. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د خپلې سیمې درې درې الوتونکو مرغانو نومونه په لیکلی بڼه نورو ته ورو‌پیژني. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## درې څلویښتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: دیوې اونۍ درسی ساعتونه

| د لوست موضوع | د لویانو خبرې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به د لویانو د خبرو پرگټو او اهمیت وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل، نوي لغتونه او نوي اصطلاحات زده کړي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي د لویانو د خبرو د گټو او اهمیت په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.<br>– زده کوونکي به د لویانو له خبرو سره مینه پیداکړي او په ورځیني ژوند کې به ترې گټه واخیستلای شي. |
| انگیزوي پوښتنه: | – تاسو د خپلو مشرانو گټورې خبرې په یاد دي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست په خپل منځ کې ولولي. او ښوونکی د اړتیا پرمهال مرسته کوي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي پخپلو ډلوکې د لویانو پرخبرو بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
– ښوونکی دوه تنه د ټولگي مخې ته پخپله خوښه راغواړي چې د لویانو درې درې خبرې نورو ته واوروي.
– ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه زده کوونکي دې پخپله خوښه په وار سره د لویانو د خبروبه اړوند نورو ته معلومات ورکړي.
– ښوونکی درې درې زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي یو ورته د لوست له مخې یوه کلمه وایي دویم یې لیکي او دریم یې نیمگړتیا سموي.

| ستونزمني برخې | غښتلې: قوي    پخې: پوره    بشپړې: پوره |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو د لویانو د هغو خبرو د تحلیل او تشریح پوښتنه کوي چې متن کې راغلي دي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | هغه گټورې او پخې خبرې چې په بېلا بېلو زمانو کې د بېلا بېلو موضوعگانو په اړوند پوهانو، عالمانو او لویانو ویلي دي، د کاڼې کرښې پر نوم یادیږي، د لویانو خبرې دي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته دنده سپاري چې ټول زده کوونکي دې د کتاب له مخې د لویانو خبرې په کتابچو کې ولیکي او بیا دې نورو ته تشریح کړي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څلورڅلويښتم لوست

## د تد ريس د لارښود پلا ن

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د ناروغۍ رقعه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>● پوهنيزې<br>● مهارتي<br>● ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>− زده کوونکي به د ناروغۍ رقعه زده او وليکلی شي.<br>− زده کوونکي به د ناروغۍ له رقعې څخه د اړتيا پروخت کارواخسيتلای شي.<br>− زده کوونکي به د ناروغۍ رقعې په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>− زده کوونکي به د ناروغۍ رقعې له زده کړې سره مينه پيدا او پر اړتياوو به يې وپوهيږي. |
| انگيزوي پوښتنه: | − الله(ج) مکړه که تاسو ناروغه شئ، څنگه خپل ښوونځي ته خبر ورکوئ؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې يو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې پر رقعې خبرې وکړي، پايله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې پخپله خوښه په وار سره د ناروغۍ رقعه پرتختې وليکي، نوردې د تختې له مخې په کتابچوکې وليکي.
- ښوونکی دوه تنه د ټولگي مخې ته راغواړي چې په وار سره د ناروغۍ رقعه له ياده نورو ته ووايي.

| ستونزمني برخي | رقعه: هغه ليک دی چې د خپل حال او ستونزو په هکله ښوونځي ته ليکل او استول کيږي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی درې تنه تختې ته راغواړي چې په وار سره پرتختې له ياده د ناروغۍ رقعه وليکي او ارزونه يې کوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلوکتابچوکې د ناروغۍ رقعه وليکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## پنځه څلویښتم لوست

## د تدریس د لار ښو د پلا ن

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | خبرې اترې ( ډ یا لوګ ) |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل، او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به پر خبرو اترو (ډیالوګ) وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به وکولای شي چې د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو په هلکله نورو ته معلومات ورکړي.<br>– زده کوونکي به په زده کړه کې د خبرو اترو له طریقې څخه خوندواخلي او مینه به یې ورسره پیداشي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – په زده کړه کې خبرې اترې څه اغېز لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی نوی لوست په مناسب غږ لولي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیر کیږي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې هر ډله دې پخپل منځ کې دوه دوه تنه خبرې اترې تمرین کړي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي پخپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي  پخپل منځ کې دې خبرې اترې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.
– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې پخپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي. د خبرو د ګټو په اړوند دې په وار سره نورو ته معلوما ت ورکړي.

| ستونزمني برخي | وزګار وخت : د بې کارۍ وخت          لیندۍ : قوس |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی دوه تنه د ټولګي مخې ته راغواړي، ورته سپارښتنه کوي چې پخپل منځ کې خبرې اترې وکړي، له دې لارې ښوونکی ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | د پوښتنو او ځوابونو په ورکولو د یوې ستونزې، یوه مطلب او مقصد ترلاسه کول له ډیالوګ څخه عبارت دی. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې ټول زده کوونکي دې یو یو ډیالوګ په کتابچوکې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپږڅلویښتم لوست

## د تدریس د لا ر ښو د پلا ن

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | زغم |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده کوونکي به دزغم پرمفهوم اوګټووپوهیږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د زغم په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له زغم کولوسره مینه ولري. |
| انګیزوي پوښتنه: | – تاسې د چا د ښکنځلو او بدو ویلو پر وخت له څه شي کار اخلئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوی چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د زغم په اړوند خبرې وکړي، پایله دې یې دډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی دوه تنه د تختې مخې ته راغواړي چې یو د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي، هغه بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور دې هغه په کتابچوکې ولیکي
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د زغم په هکله خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

| ستونزمني برخي | خځلې: هغه اضافي توکي لکه: خاورې، ایرې چې راټولې شوې وي. |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو د زغم په اړوند پوښتنې کوي او هغوی ارزوي. |
| اضافي معلومات | د بشریت ستر لارښو د او زموږ خوږ پیغمبرحضرت محمدﷺ د زغم، حوصلې او د ښو اخلاقو خاوند و، ستره حوصله یې درلوده. لوی الله ﷻ ورته د صبر او زغم لوی او پراخه زړه ورکړی و، زموږ خوږ پیغمبرﷺ د ژوند د هر راز ستونزو په اوارولو کې ډیرې له حوصلې، صبر، مېرانې او عدالت څخه کاراخسیته. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې ټول زده کوونکي دې د زغم په اړه څو کرښې معلومات ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |